


د پوهنې وزارت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب

# د انگلیسي ژبې د تدریس لارښود

# څلورم ټولگی





د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.



د انگلیسي ژبې د تدریس لارښود

څلورم ټولگی






unicef

د هر ماشوم لپاره

برای هر طفل






د پوهنې وزارت
د تعليمي نصاب او د ښوونکو د روزنې معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تألیف لوی رياست

# د انگليسي ژبې

# د ښوونکي لارښود

## د څلورم ټولگي لپاره

د چاپ کال: 1397 هـ.ش

**مؤلف**

- د سرمؤلف مرستیال جمشید زینل.
- د سرمؤلف مرستیال غلام ربانی لودین.
- معاون مؤلف امین "دانش".

**ژباړونکی:** محمد سهراب دیدار

**علمي او مسلکي اډیټور**

- د سرمؤلف مرستیال جمشید زینل.

**د ژبې اډیټور**

- سرمؤلف محمد سهراب دیدار

**دیني، سیاسي او فرهنگي کمیټه**

- محمد آصف کوچی

**د څارنې کمېټه**

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین،
- دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رئیس،
- دکتور محمد یوسف نیازي د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست سرپرست.

**کمپوز او ډیزاین**

- امید الرحمن (صدیقي)

**د چاپ د سمون چارې**

- محمد کبیر حقمل دپو د نشراتو او اطلاعاتو رییس



## ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی　　دا عزت د هـــر افغان دی
کور د سولې کور د تورې　　هر بچی یې قهرمـــان دی
دا وطن د ټولو کـــور دی　　د بلوڅـــو د ازبـــکـــو
د پښتـــون او هـــزاره وو　　د ترکمنـــو د تـــاجکـــو
ورسره عرب، گوجـر دي　　پامیـــریان، نورستـــانیـــان
براهوي دي، قزلبـاش دي　　هم ایمـــاق، هم پشـه یان
دا هیـــواد به تل ځـلیږي　　لکـه لمـر پر شنه آسمـان
په سینــه کې د آسیــا به　　لکـــه زړه وي جـــاویدان
نوم د حق مودی رهبـــر　　وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدای ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر گاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر گران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی او د رحمت، لارښوونې او روښنایی پیغام راوړونکی دی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختگونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تألیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانگې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل، دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانگړنو پر بنسټ چمتو او تألیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختگونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړوي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنگ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښېنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوې موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروگرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې هڅه او هاند خپله دنده گرځولې، دوستانه هیله لرم چې د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

د پوهنې وزیر

دوکتور میرویس بلخي

# د سرليکونو ليکلړ

## سرلیک : Starter

**مخ:2**

**وخت:** یو درسي ساعت (45 دقیقې)

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1–** د الفبا توري به له A تر F پورې وپیژني.

**2–** د الفباتوري به ولولي.

**تدریس میتود :** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** د تورو کارتونه، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

گرانه ښوونکیه، له سلام اوحال پوښتنې وروسته زده کوونکو ته خپل ځان ور وپیژنئ او له هغوی څخه وغواړئ چې خپل ځانونه معرفي کړي. وروسته زده کوونکو ته د زده کړې پر ارزښت او د انگلیسي ژبې د لوست په اړه معلومات ورکړئ او لاندې پوښتنې ترې هم وکړئ:

- د پښتو ژبې د الفبا سره بلد یاست؟
- کله مو هم انگلیسي الفبا لیدلې ده ؟
- څوک د انگلیسې ژبې الفبا ویلای شي؟

- د الفبا توري له A تر F پورې په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسو ته غوږ ونیسي. وروسته توري یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ ا و زده کوونکي دې هم له تاسې وروسته په لوړ غږ تکرار کړي.
- زده کوونکي دې یوځل بیا په ځانگړي ډول الفبا ولولي او تاسې هم د تورو په ویلو کې ورسره مرسته وکړئ.
- د الفبا توري پر کارت یا پر تخته ولیکئ او زده کوونکوته ووایئ هغه توري چې مو ولوستل، پدې بڼه دي. د هر توري له ښودلو وروسته توري په لوړ غږ ولولئ. بیا دې زده کوونکي هم تر تاسې وروسته تکرار کړي.
- له زده کوونکو څخه په ځانگړي ډول وغواړئ چې توري په لوړ غږ ولولي. وروسته زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د خپل څنگ له ملگرو سره توري ولولي.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه شي:<br>1- څوک له A -F پورې توري ویلای شي؟<br>2- څوک به د C توری وښیي؟<br>3- داچې توري مو له A تر F پوری وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>گرانه ښوونکیه! د الفبا توري له A تر F پورې تکرار کړئ او زده کوونکې دې له تاسې وروسته تکرار کړي. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته وایاست چې ننني لوست په خپلو کورونو کې تکرار کړي. |

**سرليک:** **Starter**

**مخ: 3**

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– توري به له A – F پورې و پیژني.

**2**– الفبا توري به و لوستلای شي.

**3**– الفبا توري به کاپی کړای شي.

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

| |
|---|
| **فعالیتونه**<br>ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>4- څوک له A -F پورې توري ویلای شي؟<br>➕ څوک د انگلیسي الفبا توري ویلای شي؟<br>همدا رنگه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انگیزه رامنځته کړئ:<br>➕ د پښتو الفبا توري له کوم اړخه پیلیږي؟<br>➕ څوک د A توری لیکلای شي؟<br>– د الفبا توري له A تر F پورې په لوړ غږ ولولئ ا و د لیکلو شکل یې په هوا کې وښیاست او زده کوونکو ته وښایاست چې څه ډول لیکل کیږي.<br>– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له A تر F پورې د تورو لیکل په هوا کې تمرین کړي.<br>– له A ترF پورې د تورو لیکل په تخته زده کوونکو ته وښیاست . وروسته زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د 3 مخ مطابق توري په خپلو کتابچو کې ولیکي او تاسې د لیکلو په وخت کې له زده کوونکوسره په لیکلو کې مرسته وکړئ. |

| ارزونه |
| --- |
| له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي:<br>1- څوک به د A توری پر تختې و لیکي؟<br>2- څوک کولای شي چې توري د A نه تر X ووایي.<br>3- داچې توري مو له A تر F پورې وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز:** |
| له A تر F پورې د تورو لیکل یوځل بیا په هوا کې تکرار کړئ. |
| **کورنی دنده** |
| زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې له A تر F پورې توري په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

سر لیک : Starter

مخ: 4

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– د الفبا توري به له G تر L پورې وپیژني.

**2**– د الفبا توري به له G تر L پورې ووائي.

**دتدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** د تورو کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک د انګلیسي توري له A تر F پورې لوستلای شي؟
- څوک د A او D توري په هوا کې رسمولای شي ؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړی:

- څوک له G وروسته د الفبا توری لوستلای شي؟

– د الفبا توري له G تر L پورې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې غوږ ورته ونیسي. وروسته توري یوځل بیا په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تا سو سره یې یوځای تکرار کړي.

– زده کوونکي دې یوځل بیا په ځانګړي ډول الفبا ولولي او تاسې هم د تورو په ویلو کې ور سره مرسته وکړئ.

– د الفبا توري پر کارت یا پر تختې ولیکئ او زده کوونکوته ووایئ هغه توري چې مو ولوستل، پدې ښه دي. د هر توري له ښودلو وروسته یې په لوړ غږ ولولئ او زده کوونکي دې هم تر تاسې وروسته تکرار کړي.

– له زده کوونکو څخه په ځانګړي ډول وغواړئ چې توري په لوړ غږ ولولي ، وروسته زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د خپل څنګ له ملګرو سره توري ولولي.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1. څوک له G -L پورې توري ويلای شي؟<br>2. څوک به د C توری وښيي؟<br>3. داچې توري مو له A تر L پورې وپيژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>گرانه ښوونکيه! د الفبا توري له A تر L پورې تکرار کړئ او زده کوونکي دې له تاسې وروسته تکرار کړي. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې نننی لوست په کورونو کې تکرار کړي. |

سرليک : Starter

مخ: 5

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– د الفبا توري به له G تر L پورې وپيژني.

**2**– د الفبا توري به له G تر L پورې ولولي.

**3**– د الفبا توري به له G تر L پورې کاپي کړي.

**اصطلاح ګانې او نوي کلمې:**

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

**د ښوونکي فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک د انګليسي توري له A تر F پورې لوستلای شي؟
- څوک د A او D توري په هوا کې رسمولای شي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ:

- څوک پوهيږي چې د G توری څه ډول ليکل کيږي؟
- څوک د A توری ليکلای شي؟

– د الفبا توري له G تر L پورې په لوړ غږ ولولئ او د ليکلو شکل يې په هوا کې وښياست او زده کوونکو ته وښياست چې څه ډول ليکل کيږي.

– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له G تر L پورې د تورو ليکل په هوا کې تمرين کړي.

– له G ترL پورې د تورو ليکل پر تختې زده کوونکو ته وښياست. وروسته زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د ۵ مخ مطابق توري په خپلو کتابچو کې وليکي او تاسې د ليکلو په وخت کې له زده کوونکو سره په ليکلو کې مرسته وکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>5- څوک له B -F پورې توري ویلای شي؟<br>6- څوک به د L j توري په هوا کې وښيي؟<br>1- داچې توري مو له A تر L پورې وپيژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>زده کوونکو ته له G تر L پورې د تورو ليکل یو ځل بیا په هوا کې وښياست. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې له A تر L پورې توري په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

**سرلیک : Starter**

**مخ: 6**

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1–** د الفبا توري به له S تر M پورې وپېژني.

**2** د الفبا توري به له S تر M پورې ووائي.

**دتدریس میتود:** یوکسیز او ډله ایز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** د تورو کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک د انګلیسي توري له A تر L پورې لوستلای شي؟
- څوک د H او C توري په هوا کې رسمولای شي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- د انګلیسي ژبې الفبا څو توري لري؟

– د الفبا توري له S تر M پورې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونیسي. وروسته توري یوځل بیا په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تا سو سره یې یوځای تکرار کړي.

– زده کوونکی دې یوځل بیا په ځانګړي ډول الفبا توري ولولي او تاسې هم د تورو په ویلو کې ورسره مرسته وکړئ.

– د الفبا توري پر کارت یا پر تختې ولیکئ او زده کوونکوته وښیاست، هغه توري چې مو ولوستل، پدې بڼه دي. وروسته د هر توري په ښودلو سره ، هغوی په لوړ غږ ولولئ او زده کوونکي دې هم تر تاسې وروسته تکرار کړي.

– له زده کوونکو څخه په ځانګړي ډول وغواړئ، توري په لوړ غږ ولولي ، وروسته زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د خپل څنګ له ملګرو سره توري ولولي.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه شي:<br>۱- څوك له A-S پورې توري ویلای شي؟<br>2- څوك به د C او K توری په هوا کې وښیي؟<br>3- دا چې توري مو له A تر S پورې وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>گرانه ښوونکیه! د الفبا توري له S تر M پورې تکرار کړئ او زده کوونکي دې له تاسې وروسته تکرار کړي. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې نننی لوست په کورونو کې تکرار کړي. |

## سرليک : Starter

**مخ : 7**

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– د الفبا توري به له S تر M پورې وپيژني.

**2**– د الفبا توري به له S تر M پورې ووايي.

**3**– د الفبا توري به له S تر M پورې وليکي.

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- آيا د انګليسي توري له A ترS پورې ويلای شي؟
- څوک د E او G توري په هوا کې رسمولای شي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ:

- آيا د انګليسي ژبې توري له A تر F پورې ويلای شي؟
- څوک د Q توری په هوا کې رسمولای شي؟

– د الفبا توري له S تر M پورې په لوړ غږ ولولئ ا و د ليکلو شکل يې په هوا کې وښياست او زده کوونکو ته وښياست چې څه ډول ليکل کيږي.

– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له S تر M پورې د تورو ليکل په هوا کې تمرين کړي.

– له S ترM پورې د تورو ليکل پر تختې زده کوونکو ته وښياست . وروسته زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د 7 مخ مطابق توري په خپلوکتابچو کې وليکي او تاسې د ليکلو په وخت کې د زده کوونکو څنګ ته ورشئ او له هغوی سره په ليکلو کې مرسته وکړئ.

**ارزونه**

هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:

4- څوک د F توری پر تختې لیکي؟

5- کوم زده کوونکي به د R او N توري په هوا کې وښيي؟

6- داچې توري مو له A تر S پورې وپیژندل، څه احساس لرئ؟

**د لوست لنډیز**

له M تر S پورې د تورو لیکل یو ځل بیا په هوا کې زده کوونکو ته وښیاست.

**کورنۍ دنده**

زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې لهA تر S پورې توري په خپلو کتابچو کې ولیکي.

سرلیک :            Starter

مخ: 8

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– د الفبا توري به له T تر Z پورې وپېژني.

**2**– د الفبا توري به له T تر Z پورې ووايي.

**دتدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** د تورو کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- آیا د انګلیسي توري له A تر S پورې ویلای شي؟
- څوک د Q او P توري په هوا کې رسمولای شي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- ایا پوهیږی د الفبا نور څو توري پاتې دي؟
- څوک له S وروسته د الفبا توري ویلای شي؟

– د الفبا توري له Z تر T پورې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونیسئ. وروسته توري یوځل بیا په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تا سو سره یې یوځای تکرار کړي.

– زده کوونکی دې یوځل بیا په ځانګړي ډول الفبا ولولي او تاسې هم د تورو په ویلو کې ورسره مرسته وکړئ.

– د الفبا توري پر کارت یا پر تختې ولیکئ او زده کوونکوته وښیاست هغه توري چې مو ولوستل، پدې بڼه دي. وروسته د هر توري په ښودلو سره ، هغوی په لوړ غږ ولولئ او زده کوونکي دې هم تر تاسې وروسته تکرار کړي.

– له زده کوونکو څخه په ځانګړي ډول وغواړئ چې توري په لوړ غږ ولولي، وروسته زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د خپل څنګ له ملګرو سره توري ولولي.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- آیا له Z -A پورې توري ویلای شي؟<br>2- څوک به د S توری وښيي؟<br>3-داچې توري مو له Z تر A پورې وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>گرانه ښوونکیه! د الفبا توري له Z تر A پورې تکرار کړئ او زده کوونکي دې له تاسې وروسته تکرار کړي. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې نننی لوست په کورونو کې تکرار کړي. |

**سرليک : Starter**

**مخ: 9**

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– د الفبا توري به له Z تر T پورې وپيژني.

**2**– د الفبا توري به له Z تر T پورې ووائي.

**3**– د الفبا توري به له Z تر T پورې وليکي.

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- آيا د انگليسي توري له A ترZ پورې ووائي.؟
- څوک د S توری په هوا کې رسمولای شي؟

همدارنگه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انگيزه رامنځته کړئ:

- آيا پوهيږی چې د W توری څه ډول ليکل کيږي؟
- څوک د X توری په هوا کې رسمولای شي؟

- د الفبا توري له Z تر T په لوړ غږ ولولئ ا و د ليکلو شکل يې په هوا کې وښياست او زده کوونکو ته وښياست چې څه ډول ليکل کيږي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له Z تر T پورې د تورو ليکل په هوا کې تمرين کړي.
- له Z ترT پورې د تورو ليکل پر تختې زده کوونکو ته وښياست . وروسته زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د 9 مخ مطابق توري په خپلو کتابچو کې وليکي او تاسې د ليکلو په وخت کې د زده کوونکو څنگ ته ورشئ او له هغوی سره په ليکلو کې مرسته وکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- څوک به د Y توری پر تختې ولیکي؟<br>2- آیا د Z او T توري په هوا کې لیکلای شي؟<br>3- داچې توري مو له A  تر Z پورې وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>د لیکلو طریقه په هوا کې زده کوونکو ته وښایاست. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې ننني لوست په کورونو کې کاپي کړي.<br>. |

**سرلیک :** **Starter**

**مخ: 10**

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

## زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

**1**– غږ لرونکي توري به وپیژني.

**2**– غږ لرونکي توري به ووائي.

**دتدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** د تورو کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- آیا کولای شي د انګلیسی توري له A ترZ پورې ویلای شي؟
- څوک د U-S توري په هوا کې رسمولای شي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- آیا کولای شئ ووائی چې د A د توری کومو تورو له ډلې دی.

– غږ لرونکي توري په لوړ غږ ووائي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونیسي. وروسته توري یوځل بیا په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له ستا سو سره یې یوځای تکرار کړي.

– زده کوونکي دې یوځل بیا په ځانګړې ډول الفبا ولولي او تاسې هم د تورو په ویلو کې ورسره مرسته وکړئ.

– د الفبا توري پر کارت یا پر تختې ولیکئ او زده کوونکوته وښیاست هغه توري چې مو ولوستل، پدې بڼه دي. وروسته د هر توري په ښودلو سره ، هغوی په لوړ غږ ووائي او زده کوونکي دې هم تر تاسې وروسته تکرار کړي.

– له زده کوونکو څخه په ځانګړي ډول وغواړئ چې توري په لوړ غږ ووائي ، وروسته زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د خپل څنګ له ملګرو سره توري ووائي.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه و شي:<br>1- څوک له A- Z پورې توري ویلای شي؟<br>2- څوک به غبږ لرونکي توري ووایي؟<br>3- داچې غبږ لرونکي توري مو وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>غبږ لرونکي توري تکرار کړئ او زده کوونکي دې له تاسې وروسته تکرار کړي. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې ننۍ لوست په کورونو کې تکرار کړي. |

**سرليک : Starter**

**مخ: 11**

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– غبږ لرونکي توري به وپيژني.

**2**– غبږ لرونکي توري به ووائي.

**3**– غبږ لرونکي توري به وليکي.

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

1- څوک له A- Z پورې توري ويلای شي ؟

2- غبږ لرونکي توري کوم دي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ:

- څوک پوهيږي چې د U توری څه ډول ليکل کيږي؟
- څوک به د E توری په هوا کې رسم کړي؟

- غبږ لرونکي توري په لوړ غږ ولولئ او د ليکلو شکل يې په هوا کې وښياست او زده کوونکو ته وښياست چې څه ډول ليکل کيږي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د غبږ لرونکو تورو ليکل په هوا کې تمرين کړي.
- د غبږ لرونکو تورو ليکل پر تختې زده کوونکو ته وښياست . وروسته زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د کتاب د 11 مخ مطابق توري په خپلو کتابچو کې وليکي او تاسې د ليکلو په وخت کې د زده کوونکو څنګ ته ورشئ او له هغوی سره په ليکلو کې مرسته وکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1. څوک به د O توری پر تختې ولیکي؟<br>2. آیا د E او U توري په هوا کې رسمولای شي؟<br>3. داچې غبږ لرونکي توري مو وپیژندل، څه احساس لرئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>غبږ لرونکي توري تکرار کړئ او زده کوونکي دې له تاسې وروسته تکرار کړي. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې له A تر Z پورې توري په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

سرلیک : Unit one
Lesson one

**مخونه: 13 – 14**

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کی وکولای شي:**

**1–** د سلام سهار پخير اصطلاح به زده کړي.

**2–** د سهار پخير د اصطلاح کارول او وخت به وپيژني.

**3–** انځورونه به وپيژني او نومونه به يې ووايي.

**اصطلاح گانې:** **Good Morning, Apple, Book, cat, Dog, Egg, Fish**

**ماهي هگی سپی پيشو کتاب منه سهار مو پخير**

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشير

**د لوست بهير**

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک به د انگيسي توری له A– Z پورې توري ووايي؟
- څوک به غبږ لرونکي توري ووايي؟

همدارنگه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انگيزه رامنځته کړئ:

- کله چې سهار له خوب څخه پاځيږئ دخپلې کورنی غړو ته څه واياست؟
- آيا کولای شی چې د داسې يو ژوی نوم ووایاست چې د C په توری پيل شوي وي.

– د 13 مخ خبرې اترې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونيسي. وروسته توري يوځل بيا په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تا سو سره يې يوځای تکرار کړي.

– زده کوونکي دې يوځل بيا په ډله ييز ډول ډيالوگ ولولي او تاسې هم د تورو په ويلو کې ورسره مرسته وکړئ.

- د 14 مخ د Liten and repeat د برخې د انځورونو نومونه د فلش کارت او یا د کتاب د انځورونو د ښودلو په مرسته په لوړ غږ ولولئ.
- د انځورونو نومونه په لوړ غږ ولولئ او زده کوونکي دې هم له تاسې سره تکرار کړي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړي ډول د انځورونو نومونه وپوښتئ او تاسې هم ورسره مرسته وکړئ.
- زده کوونکي په دوه نفري ګروپونو وویشئ چې د 14 مخ Point and name د برخې فعالیتونه په خپلو کې کار وکړي. د بیلګې په ډول: یوزده کوونکی د Listen and repeat برخې یوانځور ته اشاره کوي اوبل زده کوونکی د هغه نوم اخلي.

**ارزونه**

دخپل ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:

1. د good morning اصطلاح په کوم وخت کې استعمالیږي؟
2. آیا د dog، fish و apple کلمې معنا کولای شي؟
3. کله چې تاسو د good morning اصطلاح له یوبل سره استعمالوئ، څه احساس کوئ؟

**د لوست لنډیز**

تاسو په نني لوست کې د good morning اصطلاح اود apple، book، cat، dog، egg او fish کلمې زده کړې.

**کورنۍ دنده**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دیالوګ اود انځورونو نومونه په کور کې تکرار کړي.

## سرلیک: Unit 1
## Lesson 2

مخونه: 15-16

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- انځورونه به وپیژني.
2- د انځورونو نومونو به واخلي.
3- د انځورونو نومونه به ولولي.

**نوي لغتونه: apple, book, cat, dog, egg, fish: مڼه، کتاب، پیشو، سپی، هګۍ او ماهي**

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**د ښوونکې فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- آیا د سهار په خیر اصطلاح په انګلیسي ویلای شي؟
- پیشوته په انګلیسي ژبه کې څه وایي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- څوک د Cat کلمې توري ویلای شي؟

- د Dog کلمه پرتختې ولیکئ، له زده کوونکو وغواړئ چې هغه ووائي.
- د 15مخ د Look and name انځورونو برخې نومونه په لوړ اواز سره ووایئ اوله زده کوونکوڅخه و غواړئ چې تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي. له تاسو سره یوځای دې د هماغو نومونه تکرار وکړي. وروسته ستاسو له خوا له مخکې څخه اماده شوي انځورونه اویا فلش کارتونه د زده کوونکو په واک کې ورکړئ چې هغوی یې نومونه و اخلي. که چیرې یې تیروتنه و کړه، هغوی پریږدئ چې دکلمو سم ویل له نورو زده کوونکو څخه زده کړي.
- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې دLet's work together برخې فعالیت تمرین کړي د بیلګې په توګه : لومړی زده کوونکی د look and name برخې یو انځور ته اشاره کوي اودویم زده

| |
|---|
| کوونکی د هغه انځور نوم اخلي.<br>- د 16مخ د Listen and repeat دکلمو برخه په لوړ اواز ووایئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته د انځورونو نومونه پر تختې ولیکئ له زده کوونکو سره یې یوځای په سپیل سره ولولئ .<br>- له زده کوونکوڅخه په ځانګړې ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووایي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ. |
| **ارزونه**<br>1- آیا د egg، fish وapple کلمو معنا کولای شي؟<br>2- څوک د dog، cat و book کلمې په انځورونو کې ښودلای شي .<br>3- هغه کلمې چې په دې لوست کې مو زده کړې، په ورځني ژوند کې ترې کا ر اخیستلای شئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په دې لوست کې د apple, book, cat, dog, egg, fish انځورونو نومونه زده کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لار ښوونه وکړئ چې د 16مخ د Listen and repeat برخې کلمې د دوهم ځل لپاره په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit 1
## Lesson 3

مخونه: 17 – 18

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکی به  د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به  وپیژني.
2. د انځورونو نومونه به واخلي.
3. د انځورونو نومونه به ووایئ.
4. د انځورونو نومونه  به تشخیص کړي.

**د تدریس میتود:** انفرادي

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده  کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د dog, fish کلمې سپیل کړئ.
- د چرګې هګی ته په انګلیسي کې څه  وایي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه د لاندنیو پوښتنو په کولو سره انګیزه را منځته کړئ.

- د ماهي لومړی تور په انګلیسي کې څه شی دی؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Look, find and circle  برخې کلمې په چوپه خوله ووایي او هغه سمه کلمه چې د هغه انځور نوم یې پیدا کړی وي، دایره دې ترې تاوه کړي. لومړی ورکړل شوی مثال په عملي ډول له زده کوونکو سره حل کړئ.  وروسته له زده کوونکوڅخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې کلمې په لوړ اواز ووایي اوهغه کلمه چې دایره یې ترې تاوه کړي د، وښایي.  که چیرې یو زده کوونکی تیروتنه وکړه ، هغه پریږدئ بل زده کوونکی دې کلمه ووایي.
- له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې د Look find and circle  برخې کلمې په لوړ اواز ووایي.

| |
| --- |
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د الفبا کوچني توري له a- f پورې په کتاب کې د ورکړل شوي بیلګې سره سم په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. تاسو د فعالیت د سرته رسولو په بهیر کې د هغوی لیدنه وکړئ. له زده کوونکو سره په سم کاپي کولو کې مرسته او لارښوونه وکړئ. |
| **ارزونه**<br>1. د egg، fish او apple کلمې معنا کړی؟<br>2. د dog، cat او book نومونه په انځورونو کې ښودلای شي؟<br>دا چې تاسو له بیلابیلو نومونو د انځورونو نوم پیدا کړ،څه احساس مو وکړ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسوپه نننی لوست کې د apple, book, cat, dog, egg, fish کلمې د انځورونو له مخې تشخیص کړې اوهمدارنګه موله a څخه تر f پورې د الفبا کوچني توري تمرین کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې له a ترf د الفبا کوچني توري پنځه وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

سرليک: **Unit 1**
**Lesson 4**

مخونه 19-20:

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپيژني.
2. د انځورونو د نومونو لومړی توری به وپيژني.
3. د انځورونو لومړی توری به د خپلو انځورونو له مخې تشخيص او ربط به ورکړي.
4. انځورونو ته به هغوی له لومړي توري سره ربط ورکړي.
5. د انځورونو نوم به سپيل اويا هجا کړي.

**د تدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

**د لوست بهير**

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی دتيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څو ک د dog, fish کلمې سپيل کولای شي؟
- د چرګې هګی ته په انګليسي ژبه کې څه وايي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه را منځته کړئ.

- د کتاب او هګی نوم د انګليسي په کوم توري پيل کيږي؟
- – زده کوونکي په دوه کسيزو ډلو وويشئ چې د 19 مخ دLook and match برخې فعاليت کار کړي. تاسو لومړی ورکړل شوی مثال په عملي ډول په زده کوونکو باندې کارکړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په يوکسيز ډول وغواړئ چې يو يو توری ولولي او انځور يې وښيي.
  که چيرې کوم يو تيروتنه وکړه ، هغه پريږدئ، بل زده کوونکی دې انځور وښيي.

– زد کوونکو ته وخت ورکړئ چې په کتاب کې د Let’s spell برخې انځورونه په پنسل وليکي. وروسته له هغوی څخه په انفرادي ډول وغواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز سره هيجا کړي.

– زده کوونکوته وخت ورکړئ چې د 20 مخ د Look and match برخې انځورونه دهغوی له کلموسره له ورکړل شوي مثال سره سم په پنسل قلم ارتباط ورکړي. وروسته له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ

| |
|---|
| چې یویو انځور وښیي او هغه کلمه چې ورسره ربط ورکړل شوی دی، په لوړ اواز ووایي. که چیرې زده کوونکي تیروتنه وکړه وار بل زده کوونکي ته ورکړئ . |
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې له زده کوونکو څخه وشي:<br>1- څوک د dog، cat او fish کلمې معنا کولای شي؟<br>2- د apple، egg او book کلمې په کومو تورو پیل شوي دي؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په دې لوست کې د apple، book، cat، dog، egg او fish کلمو ته له خپلو انځورونوسره ارتباط ورکړ. |
| **کورنۍ کار**<br>زده کوونکو ته لارښونه وکړئ چې هغه کلمې چې په کورني کار کې ورته لارښونه شوي ده، حفظ کړي. |

## سرلیک : Unit two
## Lesson one

مخونه :22– 23

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1**– له غرمې وروسته اصطلاح به په انګلیسي ژبه کې وپیژني.

**2**– له غرمې وروسته اصطلاح ویلو وخت به وپیژني اوکار به ترې وا خیستلای شي.

**3**– انځورونه به وپیژني اونوم به یې واخلي.

**اصطلاح ګانې: Lamp, Iron, jug, kite, goat ، Good afternoon**

**ماسپښین پخیر، وزه، کاغذ پران، جګ، اتو، سراغ**

**دتدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی دتیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>- د egg, dog, fish معنا کولای شي ووایې.<br>- څوک غږ لرونکي توري ویلای شي؟<br>همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:<br>- څوک به ووایې چې د ماسپښین وروسته وخت ته کومه اصطلاح وکاروي؟<br>- پوهیږئ چې چرګې ته په انګلیسي ژبه کې څه وایې؟<br>– د 22 مخ دیالوګ په لوړ اواز ووایئ. له زده کوونکو څه وغواړئ چې په ځیر سره ورته غوږ ونیسي. وروسته ډیالوګ یوځل بیا په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسو سره یې یوځای تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ چې دیالوګ یوله بل سره ولولي اوتاسو د سختو کلمو په ویلو کې ورسره مرسته وکړئ. |

| |
|---|
| - د 23 مخ د Liten and repeat د برخې د انځورونو نومونه د فلش کارت او یا د کتاب د انځورونو په ښودلو سره په لوړ اواز ووایئ.<br>- په لوړ اواز سره د انځورونو نومونه واخلئ او له زده کو ونکو څخه و غواړئ چې له تاسو سره یو ځای د انځورونو نومونه تکرار کړي.<br>- له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې د Look and name برخې د انځورونو نومونه واخلي اوتاسوهم د نومونو په اخيستلو کې ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 23 مخ د point and say برخې فعالیت له یوبل سره کارکړي د بیلګې په ډول:<br>یو زده کوونکی د Listen and repeat برخې انځورونو ته اشاره کوي او بل زده کوونکی یې نوم اخلي. |
| **ارزونه**<br>د ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>4. د good afternoon اصطلاح په کو م وخت کې کارول کیږي؟<br>5. څوک د hen, kite, lamp کلمې معنا کولای شي؟<br>6. کله چې تاسو د good afternoon اصطلاح له یوبل سره کاروئ، څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسوپه نني لوست کې د good afternoon اصطلاح اود goat, hen, iron, jug, kite, lamp کلمې زده کړې. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دیالوګ او د انځورونو نومونه په کورکې تکرار کړي . |

**سرلیک: Unit two**
**Lesson 2**
**25-24مخونه:**

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- انځورونه به وپیژني.
2- د انځورونو نومونه به واخلي.
3- د انځورونو نومونه به ووایي.

**دتدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز
**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| |
|---|
| **د ښوونکې فعالیتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی دتېرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>✚ څوک له ماسپښین وروسته اصطلاح په انګلیسي ویلای شي؟<br>✚ کاغذ پران ته په انګلیسي کې څه وایې؟<br>همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ.<br>✚ د پښتو د کلیمې توري په انګلیسي ووایئ.<br>- څوک پوهیږي چې د Kite او goat کلمې د انګلیسي په کوم توري پیل کیږي؟<br>- د 24 مخ د Look and name برخې انځورونو نومونه په لوړ اواز سره ووایئ. له زده کوونکوڅخه و غواړئ چې تاسو ته په ځیرسره غوږ ونیسي او له تاسو سره یوځای د هغو نومونه تکرار وکړي. وروسته ستاسو له خوا تیار شوي انځورونه او یا فلش کارتونه د زده کوونکو په واک ورکړئ چې د هغو نومونه واخلي. که چیرې یې تیروتنه وکړه پرې یې بږدئ چې د کلمو سم ویل له نورو زده کوونکو څخه زده کړي؟<br>- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې Let's work together برخې فعالیت تمرین کړي. دبیلګې په توګه لومړی یو زده کوونکی د look and name برخې یو انځور ته اشاره کوي او دویم |

| |
|---|
| زده کوونکی د تصویر نوم اخلي.<br>– د 25 مخ د Listen and repeat برخې کلمې په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکوڅخه وغواړئ چې تا سو ته ښه غوږ ونیسي. وروسته د انځورونو نومونه پرتختې ولیکئ او له زده کوونکو سره یې یو ځای سپیل کړئ.<br>– له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ولولي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>– زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 26 مخ د Let's work together برخې فعالیت له یوبل سره تمرین کړي. د بیلګې په توګه : یو زده کوونکی Listen and repeat برخې فعالیت تمرین کوي او بل زده کوونک د هغه نوم اخلي. |
| **ارزونه**<br>1. څوک د Kite, hen, goat کلمې معنا کولای شي؟<br>2. څوک د lamp, jug, iron کلمې په انځورونو کې وښایاست.<br>3. آیا کلمې چې په دې لوست کې مو زده کړې، په ورځني ژوند کې ترې کار اخیستی شئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په دې لوست کې د goat, hen, iron, jug, kite, lamp انځورونو نومونه ولوستل. |
| **کورنی کار**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 25 مخ د Listen and repeat برخې کلمې په خپلو کتابچو کې کاپي کړئ. |

## سرلیک: Unit two
## Lesson 3

مخونه : 26- 27

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپیژني.
2. د انځورونو نومونه به و اخلي.
3. د انځورونو نومونه به ووائي.
4. دا نځورونو نومونه به تشخیص کړي.
5. له g – l پورې به د الفبا توري کاپي کړي.

**اصطلاح گانې او نوي کلمې:**

**د تدریس میتود:** انفرادي

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د lamp, hen کلمې د الفبا په کومو تورو پیل کیږي؟
- اُتو ته په انگلیسي کې څه و ایي؟
- همدارنگه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انگیزه را منځته کړئ.
- د خپل نوم لومړنې توری ووائي.

- زده کوونکو ته لارښوونه و کړئ چې دLook, find and circle برخې کلمې له ځان سره په چوپه خوله ولولي اوسمه کلمه چې د تصویر نوم دی، که پیدا یې کړه دایره دې ترې تاوه کړي. لومړی ورکړل شوی مثال له زده کوونکو سره په عملي ډول حل کړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې کلمې په لوړ اواز ووایي اوهغه کلمه چې دایره یې ترې تاوه کړي ده ووایي. که چیرې زده کوونکي تیروتنه و کړه، پرې یې بږدئ چې بل زده کوونکی یې ووایي.
- له زده کوونکو په انفرادي ډول و غواړئ چې Look find and circle برخې کلمې په لوړ اواز

| |
|---|
| ووايي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه و کړئ چې له g- l پورې د الفبا کوچني توري په کتاب کې له ورکړل شوي مثال سره سم په خپلو کتابچو کې کاپي کړي او تاسو هم د فعالیت په جریان کې د هغو لیدنه وکړئ. له زده کوونکو سره د هغو دکاپي کولو په برخه کې مرسته اولارښوونه و کړئ. |
| **ارزونه**<br>3. څو ک د jug، fish اوlamp کلمې معنا څه شی دی؟<br>4. څوک د hen، kite او goat کلمې په انځورونو کې وښایي.<br>5. له دې امله چې له بیلا بیلو نومونو څخه مو د انځورونو نوم پیدا کړ، څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نني لوست کې د goat, hen, iron, jug, kite, lamp کلمې د خپلو انځورونو له مخې تشخیص کړې اوهمدارنگه مو g – l پورې د الفبا دکوچنیو تورو کاپي کول تمرین کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له g- l د الفبا کوچني توري پنځه ځلي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

سرليک: **Unit two**
**Lesson 4**

مخونه: 28- 29

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

## زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:

1. انځورونه به و پيژني.
2. د انځورونو د نومونو په لومړي توري به پوه شي.
3. د انځورونو لومړی توری به له خپلو انځورونو څخه تشخيص او ربط به ورکړي.
4. د انځورونو نومونه به سپيل او يا هيجا کړي.

**دتدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** تخته او تباشير

**د لوست بهير**

| |
|---|
| **فعاليتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی دتيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>- iron, j کلمې د انگليسي الفبا په کوم توري پيل کيږي؟<br>- وزې ته په انگليسي کې څه وايي؟<br>همدارنگه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انگيزه رامنځته کړئ.<br>- د iron, jug کلمې سپيل کولای شي؟<br>– زده کوونکي په دوه کسيزو ډلو وويشئ چې دکتاب د 28 مخ دLook and match برخې فعاليت کار کړي. لومړی تاسو ورکړل شوی مثال په عملي ډول له زده کوونکوسره کار کړئ. وروسته دې زده کوونکي يو يو توری په انفرادي ډول ولولي او انځور دې يې وښيي. که چيرې يې تيروتنه کړي وه پريږدئ چې بل زده کوونکی انځور وښيي.<br>- زده کوونکو ته و خت ورکړئ چې د Let's spell برخې انځورونو نومونه په خپلو کتابونو کې په پنسل وليکي. وروسته له هغوی څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز هيجا کړي.<br>-زده کوونکو ته وخت ور کړئ چې د 29 مخ د Look and match برخې انځورونوته له ورکړل شوي مثال سره سم د هغوی له کلمو سره ارتباط ورکړي. وروسته له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې يو يو انځور وښيي اوهغه کلمه ورسره چې ربط يې ورکړی دی، په لوړ اواز ولولي. که چيرې يې تيروتنه |

| |
| --- |
| وکړه، بل زده کوونکي ته وار ورکړئ. |
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې له زده کوونکو وشي:<br>1- څوک د jug, lamp, goat کلمې معنا کولای شي؟<br>2- څوک ویلای شي چې د hen, iron, goat کلمې په کومو تورو پیل شوي دي؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په دې لوست کې د goat, hen, iron, jug, kite, lamp کلمو ته له خپلو انځورونو سره ربط ورکړ. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه و کړئ چې په کورني کار کې ورکړل شوي کلمې په یادو زده کړي. |

## سرلیک : Unit three
## Lesson one

**مخونه: 31 – 32**

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

**1–** د ماښام په خیر اصطلاح باندې به په انګلیسي ژبه پوه شي.

**2–** د ماښام په خیر د ویلو وخت به وپیژني او استفاده به ترې وکړای شي.

**3–** انځورونه به وپیژني اونوم به یې واخلي.

**اصطلاح ګانې: Good evening، Pen, Orange, Net, Map, Sun, Radio, Queen:**

**ماښام پخیر، رادیو، لمر، نقشه، جال، نارنج، قلم، ملکه**

**د لوست میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>- د hen, lamp, kite کلمو معنا و یلای شي؟<br>- د goat, iron کلمې سپیل کولای شي؟<br>همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ.<br>- څوک چې ماښام ویني، کومه اصطلاح کاروي؟<br>– آی پوهیږئ چې چرګې ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>– د 31 مخ دیالوګ په لوړ اواز ووایئ او له زده کوونکو څخه و غواړئ چې ښه ورته غوږ ونیسي.<br>وروسته دیالوګ یوځل بیا په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یوځای تکرار کړي. |

| |
|---|
| - د 32 مخ د Liten and repeat برخې د انځورونو نومونه د فلش کارت یا په خپله دکتاب د انځورونو په ښودلو سره په لوړ اواز ولولئ.<br>- د انځورونو نوم په لوړ اواز سره واخلئ او له زده کوونکو څخه و غواړئ چې له تاسو سره یوځای د انځورونو نومونه تکرار کړي.<br>- له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د انځورونو نوم واخلي اوتاسو هم د انځورونود نومونو په ویلو کې له زده کوونکوسره مرسته وکړئ.<br>- له زده کوونکو په انفرادي ډول و غواړئ چې د Look and name برخې انځورونو نومونه واخلي اوتاسو هم د انځورونود نومونو په ویلو کې له زده کوونکوسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 32 مخ د Let's work together برخې فعالیت له یوبل سره کار وکړي. د بیلگې په توگه یو زده کوونکی د Look and name برخې یو انځور ته اشاره کوي اوبل زده کوونکی یې نو م اخلي. |
| **ارزونه**<br>د ډاډ لاسته راوړلو لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>دgood evening اصطلاح په کوم وخت کې کارول کیږي.<br>1. د map, queen, radio تصویرونو ته اشاره وکړئ او له زده کوونکو و غواړئ چې د هغو نومونه واخلي.<br>2. کله چې تاسو د good evening اصطلاح وکاروئ، څه احساس کوئ. |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نننې لوست کې د good evening اصطلاح اود map, net, orange, pen, queen, radio, sun انځورونو نومونه زده کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې دیالوگ او د انځورونو نومونه په کورکې تکرار کړي. |

**سرلیک: Unit three**
**Lesson 2**

مخونه: 33-34

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- انځورونه به وپيژني.

2- د انځورونو نوم به واخلي.

**د تدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** فلش کار ت، تخته او تباشير

**د لوست بهير**

| فعاليتونه: |
|---|
| ددې لپاره چې ښوونکی د تيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>➕ د ماښام په خير اصطلاح په انګليسي ژبه ويلای شي؟<br>➕ نقشې او ملکې ته په انګليسي کې څه وايي؟<br>همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ.<br>➕ هغه کليمه چې په انګليسي کې د دريو تورو څخه جوړه شوي ده او روښنايي معنا ورکوي کومه ده؟<br>➕ څوک sun, orange په انځورونو کې ښودلای شي؟<br>- د 33 مخ د Look and name برخې د تصويرونو نوم په لوړ اواز ووايئ. له زده کوونکو و غواړئ چې ښه ورته غوږ ونيسي اوله تاسو سره يوځای د هغوی نومونه تکرار کړي . وروسته ستاسو له خوا له مخکې څخه انځورونه او يا فلش کارتونه دزده کوونکو په واک کې ورکړئ چې هغوی يې نومونه واخلي.که چيرې يې کومه تيروتنه وکړه پرې يې ږدئ چې له نورو زده کوونکو څخه د کلمو سموالی زده کړي.<br>- زده کوونکي په دوه کسيزو ډلو وويشئ چې Let's work together برخې فعاليت تمرين کړي. دبيلګې په توګه يو زده کوونکی د look and name برخې ته اشاره کوي اوپوښتنه کوي What is this? بل زده کوونکی د ..... It is a په کارولو سره ځواب ورکوي.<br>- د 34 مخ د Look and read برخې کلمې په لوړ اواز ووايئ او له زده کوونکوڅخه وغواړئ چې غوږ ورته ونيسي. وروسته د انځورونو نومونه پر تختې وليکئ له زده کوونکو سره يوځای يې سپيل کړئ. |

| |
|---|
| – له زده کوونکو څخه په يوکسيز ډول وغواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووايي. تاسو ورسره مرسته وکړئ. |
| **ارزونه**<br>1– د orange, pen, sun کلمې معنا کړئ؟<br>2– د sun, radio, queenکلمې په انځورونو کې وښاياست؟<br>3– هغه کلمې چې په لوست کې مو زده کړې، په خپل ورځني ژوند کې ترې کار اخلئ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې د map, net, orange, pen, queen, radio, sun انځورونو نومونه زده کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 34 مخ د Look and and read برخې کلمې دوه ځلي په خپلو کتابچو کې وليکي. |

## سرلیک: Unit three
## Lesson 3

مخونه: 35- 36

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپيژني.
2. د انځورونو نومونه به واخلي.
3. د انځورونو نومونه به تشخيص کړي.
4. له m- s پورې دالفبا توري به کاپي کړي.

**د تدريس ميتود:** انفرادي

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشير

**د لوست ميتود**

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د orange, radio, net کلمې دالفبا په کومو تورو پيل کيږي؟
- جال ته په انګليسي کې څه وايي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ.

- د نړۍ په نقشه کې افغانستان پيدا کولای شی.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 35 مخ د Look, find and circle برخې کلمې له ځان سره په چوپه خوله ووايي او د انځور سم نوم پيدا کړي اوترې دايره تاوه کړي. لومړی ورکړل شوی مثال په عملي ډول له زده کوونکو سره حل کړئ. وروسته له زده کوونکو په انفرادي ډول و غواړئ چې کلمې په لوړ اواز ولولي اوهغه کلمه چې دايره يې ترې تاوه کړي، ووايي.که چيرې يو زده کوونکي تيروتنه وکړه پرې يې بږدئ چې بل زده کوونکی کلمه ووايي.

- له زده کوونکو په انفرادي ډول و غواړئ چې دLook find and circle برخې کلمې په لوړ اواز ووايي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له m- s پورې د الفبا کوچني تورې په کتاب کې له ورکړل مثال

| |
|---|
| سره سم  په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. تاسو د فعالیت  په جریان کې د هغوی لیدنه وکړئ او له زده کوونکو سره د تورو په سم کاپي کولو کې مرسته او لارښوونه وکړئ. |
| **ارزونه**<br>1. د net، sun او map کلمې معنا کړئ.<br>2. د radio, queen, pen کلمې په انځور کې وښایاست.<br>3. داچې له  بیلا بیلو نومونو څخه د انځورونو  نوم پیدا کړئ، څه  احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نننی لوست کې  map, net, orange, pen, queen, radio, sun کلمې دخپلو انځورونو له مخې تشخیص کړې .همدارنگه مو له m – s پورې د الفبا کوچني توري تمرین کړل. |
| **کورني کار**<br>زده کوونکو ته لارښوونه  وکړئ چې له m - s  پورې د الفبا کوچني توري  پنځه ځلي په خپلو  کتابچو کې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit three
## Lesson 4

مخونه: 37- 38

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپیژني.
2. د انځورونو لومړی توری به د انځورونو له مخې تشخیص او ربط به ورکړي.
3. د انځورونو نوم به سپیل اویا هیجا کړي.

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک د net, sun, radio کلمې په تصویرکې ښودلای شي.
- نارنج ته په انګلیسي کې څه وایي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنوسره انګیزه رامنځته کړئ.

- د Net, Map, queen کلمې دالفبا په کومو تورو پیل کیږي؟
- - زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 37 مخ Look and match برخې فعالیت کار کړي. لومړی تاسو ورکړل شوی مثال په عملي ډول له زده کوونکوسره کار وکړئ . وروسته له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې یو یو توری ووایي اوانځور یې وښیي. که چیرې یې تیروتنه وکړه، پرې یې بږدئ چې بل زده کوونکی انځور وښیي.
- - زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د Let's spell برخې انځورونه په خپلو کتابونوکې په پنسل سره ولیکي . وروسته له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز سره هیجا کړي.

زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 38 مخ د Look and match برخې انځورونه د هغو له کلمو سره له ورکړل شوي مثال سره سم په پنسل ارتباط ورکړي. وروسته له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې یو انځور وښیي اوهغه کلمه چې ورسره ارتباط ورکړل شوی دی، په لوړ اواز ولولي.که چیرې یې تیروتنه

| |
|---|
| وکړه وار بل زده کوونکي ته ورکړئ. |
| **ارزونه**<br>هغه پوښتنې چې له زده کوونکو وشي:<br>1- د sun, map, net کلمې سپيل کړئ.<br>2- د radio, orange کلمو وروستي توري ووايي. |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې map, net, orange, pen, queen, radio کلموته له خپلو انځورونو سره ربط ورکړئ. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 38 مخ د Look and match برخې کلمې په خپلو کتابچو کې دوه دوه وارې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit four
## Lesson 1

مخونه: 40- 41

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. دیالوګ به ولولي.
2. دیالوګ به تمثیل کړي.
3. نوي تصویرونه به وپیژني اونوم به یې و اخلي.

**نوي اصطلاح: ?how are you – تاسو سنګه یاست**

**نوي لغتونه: Hello, table, umbrella, van, wall, x-ray, yak, zoo**

**ژوبڼ، غژګاو، اکسرې، دیوال، چترۍ، میز، سلام.**

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>➕ د hen, net, map کلمو معنا ویلای شي؟<br>➕ د sun, net کلمې سپیل کولای شي؟<br>➕ همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ.<br>➕ د روغبړ په وخت کې له کومې اصطلاح نه ګټه اخلی.<br>➕ د ټولګي دننه شیانو نومونه ووایئ.<br>– د 40 مخ دیالوګ په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې ښه غوږ ونیسي. وروسته دیالوګ په لوړ اواز ولولئ. له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په دوه کسیز ډول وغواړئ چې دیالوګ له یوبل سره کارکړي اوتاسو د سختو کلمو په ویلو کې ورسره مرسته و کړئ.<br>– د40 مخ د Liten and repeat برخې د انځورونو نومونه د فلش کارت یا په خپله دکتاب د انځورونو په ښودلو سره په لوړ اواز واخلئ. |

| |
|---|
| – د انځورونو نومونه په لوړ اواز واخلئ او له زده کوونکو څخه و غواړئ چې له تاسو سره یو ځای د انځورونه نومونه تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې د انځورونو نومونه وا خلي اوتاسو هم له هغوی سره د انځورونو په نومونو کې مرسته وکړئ.<br>– له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د Look and name برخې انځورونو نومونه واخلي اوتاسو هم د انځورونو په نومونو کې ورسره مرسته وکړئ.<br>– زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 41 مخ د Let's work together برخې فعالیت له یوبل سره کار و کړي. د بیلګې په توګه : یو زده کوونکی انځور ته اشاره کوي اوپوښتنه کوي What is this? بل زده کوونکی د It is a/ an په کارولو سره ځواب ورکوي. |
| **ارزونه**<br>د خپل ډاډ لپاره له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې و کړئ.<br>د How are your? اصطلاح په کوم و خت کې کاروو؟<br>د yak, x-ray, wall انځور ته اشاره وکړئ اوله زده کوونکو څخه و غواړئ چې د هغو نوم ووایي.<br>3. کله چې تاسو د How are you? اصطلاح له یوبل سره وکاروئ، څه احساس کوئ. |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نننۍ لوست کې د How are you? اصطلاح اود table, van, wall, x-ray, yak, zoo انځورونو نومونه زده کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دیالوګ او د انځورونو نومونه په کورکې تکرار کړي. |

## سرلیک: Unit four
## Lesson 2

مخونه: 42-43

1- **وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**2- موخې**

**3- زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

4- انځورونه به وپيژني.

5- د انځورونو نوم به واخلي.

6- د انځورونو نومونه به ووايي.

**نوي لغتونه:**

**د تدريس ميتود:** يوکسيز او ډله ييز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** فلش کار ت، تخته او تباشير

**د لوست بهير**

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوك به په انګليسي ووايي"څنګه يې"؟
- چترى او باغ وحش(ژوبڼ) ته په انګليسي ژبه کې څه وايي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ.

- د باران په وخت کې د څه شي څخه ګټه اخلی.
- د ژويو د ليدلو د پاره کم ځاى ته ځې؟

- د 42 مخ د Look and name برخې انځورونو نومونه په لوړ اواز ووايئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځيرسره غوږ ونيسي او له تاسو سره يوځاى د هغو نومونه تکرار وکړي. وروسته تصويرونه او يا له پخوا څخه تيارشوي فلش کارتونه د زده کوونکو په واك کې ورکړئ چې هغوى يې نوم واخلي. که چيرې يې تيروتنه وکړه، پرې يې بږدئ چې دکلمو سم ويل له نورو زده کوونکو څخه زده کړي.
- زده کوونکي په دوه کسيزو ډلو وويشئ چې د Let's work together برخې فعاليت تمرين کړي. مثلا لومړی زده کوونکی د look and name يو انځورته اشاره کوي اوپوښتنه کوي What is this? اودويم زده کوونکی د ..... It is a/an په کارولو سره ځواب ورکوي.
- د 43 مخ د Listen and repeat برخې کلمې په لوړ اواز ووايئ او له زده کوونکو څخه و غواړئ چې سم غوږ ونيسي . وروسته د انځورونو نومونه پرتختې وليکئ، له زده کوونکوسره يې يوځاى سپيل

| |
|---|
| کړئ<br>- له زده کوونکو په انفرادي ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووايي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ. |
| **ارزونه**<br>4- ]ځوك د x-ray, van, wall کلمې معنا کوي؟<br>5- څوك د yak, table, zoo کلمې په انځور کې وښایاست.<br>6- هغه کلمې چې په دې لوست کې مو زده کړې، په ورځني ژوند کې ترې استفاده کولای شئ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې د table, umbrella, van, wall, x-ray, yak, zoo انځورونو نومونه زده کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 43 مخ د Listen and repeat برخې کلمې دوه ځلې په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit four
## Lesson 3

مخونه: 44- 45

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

### موخې

### زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1. انځورونه به وپیژني.
2. د انځورونو نوم به و اخلي.
3. د انځورونو نومونه به تشخیص کړي.
4. له t – z د الفبا توري به کاپي کړي.

### اصطلاح ګانې او نوي کلمې:

**د تدریس میتود:** یوکسیز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

### د لوست بهیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>➕ څوک ویلای شي چې د wall, table, zoo کلمې دالفبا په کومو تورو پیلیږي؟<br>➕ غژګاو ته په انګلیسي ژبه کې څه وایي؟<br>➕ همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ.<br>➕ د Yak کلیمه د څو تورو څخه جوړه شوي ده.<br>– زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 44 مخ د Look, find and circle برخې کلمې له ځان سره په چوپه خوله ووایي اود انځور سم نوم پیدا کړي اودایره ترې تاوه کړي. لومړی ورکړل مثال له زده کوونکو سره په عملي ډول حل کړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې کلمې په لوړ اواز ولولي او هغه کلمه چې دایره یې ترې تاوه کړي ده، ووایي. که یې تیروتنه وکړه، پرې یې بږدئ چې بل زده کوونکی هغه کلمه ووایي.<br>– له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د Look find and circle برخې کلمې په لوړ اواز ووایي. |

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له m څخه ترS د الفبا کوچني توري په کتاب کې د ورکړې مثال سره سم په خپلو کتابچو کې کاپي کړي او تاسو د فعالیت په سرته رسولو کې له هغوی څخه لیدنه وکړئ اوله زده کوونکو سره د تورو په سم کاپي کولو کې مرسته اولارښونه وکړئ. |
| **ارزونه**<br>1. د yak, wall, table کلمې معنا کوي؟<br>2. د umbrella, x-ray, zoo کلمې په تصویر کې وښایاست.<br>3. دا چې د بیلابیلو نومونو له ډلې څخه مو د انځورونو نومونه پیدا کړئ، څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نني لوست کې table, umbrella, van, wall, x-ray, yak, zoo کلمې د انځورونو له مخې تشخیص کړې اوهمدارنگه مو له T - Z پورې د الفبا کوچني توري تمرین کړل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له t – z پورې د الفبا کوچني توري پنځه ځلي په کتابچو کې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit four
## Lesson 4

مخونه: 37- 38

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپیژني.
2. د انځورونو د نومونوپه لومړي توري به وپوهیږي.
3. د انځورونو لومړی توری به د خپلو انځورونو له مخې تشخیص او ربط به ورکړي.
4. د انځورونو نومونه به سپیل اویا هیجا کړي.

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د x-ay, wall کلمې په انځورونو کې وښایاست.
- چترۍ ته په انګلیسي ژبه څه وایي؟
- همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ.
- د table, van, zoo کلمې دالفبا په کومو توری پیل کیږي؟
- - زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 46 مخ د Look and match برخې فعالیت کارکړي. لومړی ورکړل شوی مثال له زده کوونکو سره په عملي ډول کار کړئ . وروسته له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې یو یو توری ولولي اوانځور یې وښیي. که چیرې یې تیروتنه وکړه، بل زده کوونکی دې تصویر وښیي.

- زده کوونکوته وخت وکړئ چې د Let’s spell برخې انځورونه په خپلو کتابونو کې په پنسل سره ولیکي. وروسته له هغوی څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز سره هیجا کړي.

- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 47 مخ دLook and match برخې انځورونه له ورکړل شوي مثال سره سم د هغوی په کلمو سره په پنسل ربط ورکړي. وروسته له زده کوونکوڅخه په انفرادي ډول و غواړئ چې یو یو انځور وښیياو هغه کلمه چې ربط یې ورکړی دی، په لوړ اواز ولولي. که یې تیروتنه وکړه وار

| |
|---|
| بل زده کوونکي ته ورکړئ. |
| **ارزونه**<br>له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1- د yak, wall, zoo کلمې سپيل کړئ.<br>2- د table, x-ray کلمو وروستي توري ووايئ. |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې table, umbrella, van, wall, x-ray, yak, zoo کلمو ته له انځورونو سره ربط وکړ. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له t – z پورې توري پنځه ځلي په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit five
## Lesson 1

مخونه: 49- 50

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. دیالوګ به ولولي .
2. دیالوګ به تمثیل کړي.
3. نوي انځورونه به وپیژني اونوم به یې واخلي؟
4. نا بشپړې کلمې به په مناسبو تورو سره پوره کړئ.

**نوي اصطلاح: Good Marning Students، زده کوونکو سهر مو پخیر.**

**نوي لغتونه: Good Marning Teacher, how are you today, fine thank you**

**ښوونکی صاحب سحر مو پخیر، نن ورځ څرنګه یاست. ښه یو مننه.**

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- به د ژوبڼ ، میز او اکسري کلمې په پښتو ووایي؟
- به د wall, او umbrella کلمې سپیل کړئ.
- همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ.
- پوهیږئ چې How are you? په پښتو کې څه معنا لري؟

- په یاد مو دي چې وزې ته په انګلیسي کې څه و ایي؟
- د 49 مخ دیالوګ په لوړ او از ولولئ اوله زده کوونکو و غواړئ چې غوږ ورته ونیسي . وروسته دیالوګ یو ځل بیا په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې تکرار کړي.
- له زده کوونکو څخه په دوه کسیز ډول وغواړئ چې دیالوګ له یوبل سره کارکړي اوتاسو هم له هغو سره د سختوکلمو په ویلو کې مرسته وکړئ.
- د 49 مخ د Point and name دبرخې د انځورونو نوم د فلش کارت اویا دکتاب د انځورونوپه ښودلو

| |
|---|
| سره په لوړ اواز واخلئ.<br>– له زده کوونکو څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې د انځورونو نوم واخلي اوتاسو هم د انځورونو د نومونو په برخه کې ورسره مرسته و کړئ.<br>– زده کوونکو ته په انفرادي ډول دنده ورکړئ چې د 50 مخ دFun with words برخې نا بشپړې کلمې په خپلو کتابچوکې بشپړې کړي . وروسته له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي. یوه یوه کلمه پرتختې ولیکي. که چیرې یې تیروتنه و کړه، له بل زده کوونکي وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او سمه کلمه ووایي. |
| **ارزونه**<br>دخپل ډاډ لپاره له زده کوونکو لاندې پوښتنې و کړئ:<br>د ?How are your اصطلاح په کوم وخت کې استعمالیږي؟<br>1. د kite, iron, goat تصویرونو ته اشاره و کړئ او له زده کوونکو و غواړئ چې د هغو نومونه واخلي.<br>2. کله چې تاسو ?How are you اصطلاح استعمالوئ، څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نني لوست کې د Good morning او ?Fine Thank you, How are you اصطلاح ولوسته او همدارنګه مو book, cat, goat, jug, kite, iron کلمې یوځل بیا تکرار کړې. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه و کړئ چې د Fun with words برخې نا بشپړې کلمې په خپلو کتابچو کې بشپړې کړي. |

## سرلیک: Unit five
## Lesson 2

مخونه: 51-52

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- انځورونه به وپیژني.

2- د انځورونو نومونه به واخلي.

3- د انځورونو نومونه به ولولي.

**4-** انځورونو ته به د هغوی له نومونو سره ربط ورکړي.

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي: فلش کارت،** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک به انګلیسي ووایي چې "ځنګ یې"؟
- پیشو اوکتاب ته په انګلیسي ژبه کې څه وایي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- زموږ په هېواد کې Queen یا ملکه شته؟

- څوک د egg, fish تصویر په تصویرونو کې ښودلای شي؟
- زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې د 51 مخ د Look and match برخې انځورونو ته به پنسل سره له خپلو نومونو سره ارتباط ورکړي . لومړی له زده کوونکو سره د انځورونو نومونه په لوړ اواز ولولئ. وروسته له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې یو یو انځور وښیي اوهغه نوم چې ربط یې ورکړی، ووایي.که چیرې یو زده کوونکي تیروتنه وکړه، هغه پریږدئ چې بل زده کوونکی د انځور سم نوم ووایي.

له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې د 51 مخ د Look and read برخې انځورونه په لوړ اواز ووایي.

- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 52مخ د Let's work together برخې فعالیت

| |
|---|
| تمرین کړي. مثلا لومړی زده کوونکی یو انځورته اشاره کوي اوپوښتنه کوي ?What is this دویم زده کوونکی د ..... It is a/an په کارولو سره ځواب ورکوي. |
| **ارزونه**<br>7- د x-ray, van, wall کلمې معنا کړي.<br>8- د yak, table, zoo کلمې په انځورکې وښيي؟<br>9- هغه کلمې چې په دې لوست کې مو زده کړې، په ورځني ژوند کې ترې کار اخلئ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې د map, neet, sun, pen, radio, umbrella queen, table, van, orange, x-ray, yak, wall, zoo د انځورونو نومونه ولوستل. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې Let's work together برخې انځورونو نومونه په خپلو کتابچوکې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit five
## Lesson 3

مخونه: 53- 54

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

### موخې

### زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1. انځورونه به وپیژني.
2. د انځورنو نومونه به ووايي.
۳. د انځورونو نومونه به ولولي.

### د لوست بهیر

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څوک به ووايي چې دwall, table, zoo کلمې دالفبا په کومو کلمو پیل کیږي؟
- میښې ته په انګلیسي ژبه کې څه وايي؟
- همدارنګه د انګیزې د پیدا کیدلو له پاره لاندې پوښتنه وکړي.
- د Table کلمه په هواکې ولیکي؟

- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 53 مخ د Point and name برخې فعالیت له یوبل سره تکرار کړي. لومړی ورکړل شوی مثال په عملي ډول له زده کوونکوسره کار کړئ. وروسته له زده کوونکوڅخه په دوه کسیزه ډله کې وغواړئ چې فعالیت په لوړ اواز کارکړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب د54مخ د Look and Match برخې تصویرونو ته وګوري اوهغوی ته په پنسل سره ربط ورکړي. وروسته له هغوی څخه په انفرادي ډول و غواړئ چې یو یو انځور وښیي او نوم یې په لوړاواز سره ووايي. که چیرې یو زده کوونکي تیروتنه وکړه، پرې یې ږدئ چې بل زده کوونکی د انځور نوم ولولي.
- له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي د Read and write برخې یو انځور په لوړ اواز ووايي اوپرتختې یې نوم ولیکي.

**ارزونه**

1. د yak, wall, table کلمې معنا کولای شي؟
2. د umbrella, x-ray, zoo کلمې په انځور کې وښایاست.
3. دا چې کولای شئ انځورونوته له خپلو نومونوسره ارتباط ورکړئ، څه احساس درته پیدا کیږي؟

**د لوست لنډیز**

تاسو په نننې لو ست کې د table, umbrella, van, wall, x-ray, yak, zoo کلمې ولوستې او انځورونوته مو له خپلو نومونوسره ارتباط ورکړ.

**کورنی دنده**

زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې د Read and write برخې کلمې په خپلوکتابچو کې دوه ځلې کاپي کړي.

## سرلیک: Unit six
## Lesson 1

مخونه: 56- 57

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. دیالوګ به ولولي.
2. دیالوګ به تمثیل کړي.
3. نوي انځورونه به وپیژني اونومونه به يې واخلي.

**نوي اصطلاح: Please stand up. لطفا ودریږئ**

**نوي لغتونه : ant, ball, car, desk, eagle, fox**

**ګیدړه، باز، میز، موټر، پنډوسه، میږی.**

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د hen, net, map کلمو معنا ووایې؟
- د sun, net کلمې سپیل کوي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- پوهیږئ چې د .Please stand up جمله په پښتو ژبه کې څه معنا ورکوي؟
- میز ته په انګلیسي ژبه کې څه وایې؟

- د 56 مخ د Let’s talk برخې دیالوګ په لوړ اواز ووايئ اوله زده کوونکو څخه و غواړئ چې غوږ ورته ونیسي. وروسته دیالوګ یوځل بیا په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو و غواړئ چې له تاسو سره يې یوځای تکرار کړي.
- له زده کوونکو په دوه کسیز ډول و غواړئ چې دیالوګ له یوبل سره کار کړي اوتاسو هم له هغوی سره د سختو کلمو په ویلو کې مرسته وکړئ.
- د 57 مخ د Liten and repeat برخې انځورونو نومونه د فلش کارت یا د کتاب د انځورونو په

| |
|---|
| ښودلو سره په لوړ اواز ووایئ.<br>– د تصویرونو نومونه په لوړ اواز ووایئ اوله زده کوونکو څخه و غواړئ چې له تاسو سره یوځای د تصویرونو نومونه تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د تصویرونو نومونه ولولي اوتاسو هم له هغوی سره د انځورونو د نومونو په ویلو کې مرسته وکړئ.<br>– زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې د 57 مخ Let's work together برخې فعالیت له یوبل سره کار وکړي. د بیلګې په توګه یو زده کوونکی د Listen and repeat برخې څخه د یو انځور نوم وایي، دویم زده کوونکی د هغه انځور ته اشاره کوي او پوښتنه کوي. |
| **ارزونه**<br>د خپل ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1. د .Please stand up جمله په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>2. د eagle, desk, car انځورونو ته اشاره وکړئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې د هغو نومونه ووایي.<br>3. کله چې تاسو د.Please stand up جمله اورئ، څه کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نني لوست کې د .Please stand up او .Read this جملې وویلې او همدارنګه مو ant, ball, car, desk, eagle, fox کلمې زده کړې. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې Listen and repeat برخې له انځورونو یو انځور په خپلو کتابچوکې رسم او رنګه کړي. |

## سرلیک: Unit six
## Lesson 2

مخونه: 58-59

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- انځورونه به وپیژني.

2- د انځورونو نومونه به ووايي.

3- ساده جملې به ووايي.

**د تدریس میتود: یو کسیز او ډله ییز**

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**دلوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د Read this? جمله په پښتو ژبه کې څه معنا ورکوي؟
- عقاب او ګیدړې ته په انګلیسي ژبه کې څه وايي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- د Eagle کلیمه څه معنا ورکوي؟
- د 58 مخ د Litsen and repeat برخې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووایئ او له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یو ځای د انځورونو نومونه تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو څخه په ځنځیري ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه ولولي.
- د Listen and repeat برخې جملې په لوړ اواز ووایئ او له زده کوونکو وغواړئ چې تاسو ته ښه غوږ ونیسي. وروسته جملې یوځل بیا په لوړ اواز ولولئ، خو دا ځل له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو وروسته یې تکرار کړي. له هغه وروسته له څو زده کوونکو وغواړئ چې جملې په لوړ اواز ووايي. که چیرې د جملو په لوستلو کې ستونزه ولري، مرسته ورسره وکړئ.
- زده کوونکي په دوه کسیزو ډولو وویشئ چې د Let's work together برخې فعالیت له یوبل سره کارکړي. لومړی ورته لارښونه وکړئ چې دغه فعالیت له خپلو ټولګیوالو سره ترسره ورسوي . وروسته د ټولګي په بیلا بیلو برخو کې له څو ډلو څخه و غواړئ چې فعالیت په لوړ اواز سرته

| |
|---|
| ورسوي. |
| **ارزونه**<br>1- د ant, desk, fox کلمې معنا کړئ.<br>2- It is an ant په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>3- هغه کلمې او جملې چې په دې لوست کې مو زده کړې، په ورځني ژوند کې ترې استفاده کولای شئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په دې لوست کې It is an ant. It is ball. It is a car. It is a desk. It is an eagle. It is a fox. جملې ولوستلې. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Let's work together برخې جملې په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

سرلیک: Unit six
Lesson 3

مخونه: 60- 61

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپيژني.
2. د انځورونو نومونه به واخلي.
3. د انځورونو نومونه به تشخيص کړي.
4. د الفباتوري به له A – F وليکي.

**اصطلاح گانې او نوي کلمې:**

**د تدريس ميتود:** يوکسيز

**د لوست د اړتيا وړ توکي:** فلش کارت، تخته و تباشير

**دلوست بهير**

**فعاليتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تيرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- د Desk, Ant, Fox کلمې د الفبا په کوموتورو پيليږي؟
- عقاب ته په انگليسي ژبه کې څه وايي؟

همدارنگه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انگيزه رامنځته کړئ:

- څوک به د الفبا توري په ترتيب سره ووايي؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 60 مخ د Look, find and circle برخې کلمې له ځان سره په پټه خوله ووايي. د انځور سم نوم دې پيدا کړي او دايره دې ترې تاوه کړي. لومړی ورکړل شوی مثال په زده کوونکو باندې په عملي ډول حل کړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په يوکسيز ډول وغواړئ چې کلمې په لوړاواز ووايي اوهغه کلمه چې دايره يې ترې تاوه کړې ده ووايي.که يې تيروتنه وکړه پرې يې بږدئ چې بل زده کوونکی هغه کلمه ووايي.

| |
| --- |
| - له زده کوونکو څخه به یوکسیزډول وغواړئ چې د Look find and circle برخې کلمې په لوړ اواز ووایي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د الفبا کوچني توري له A – F پورې په کتاب کې له ورکړل شوي مثال سره سم په خپلو کتابچوکې کاپي کړي اوتاسوهم د هغوی د فعالیت جریان وګورئ او له زده کوونکو سره د تورو په سم کاپي کولو کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه**<br>1. د عقاب، میږي اوتوپ کلمې په انګلیسي ژبه ووایي.<br>2. د Car, Fox, Desk کلمې په تصویرکې ښودلای شي؟<br>3. دا چې کولای شئ د بیلابیلو نومونو په منځ کې د انځورونو نوم پیدا کړئ، څه احساس کوئ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نننې لوست کې د ant, ball, car, desk, eagle, fox کلمې د انځورونو له مخې تشخیص کړې اوهمدارنګه مو له A – F پورې دالفبا دکوچنیو تورو دکاپي کولو تمرین وکړ. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له A – F پورې د الفبا کوچني توري په خپلو کتابچو کې پنځه ځلې کاپي کړي. |

## سرلیک: Unit six
## Lesson 4

مخونه: 62- 63

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

### موخې زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1. ځوک به د نومونو په لومړي توري پوه شي.
2. د انځورونو لومړی توری ته به د هغوی د نورو انځورونو له مخې تشخیص او ربط به ورکړي.
3. د انځورونو نومونه به سپیل اویا هیجا کړي.
4. د انځورپه هکله به ساده جملې ووایي.

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- به د Ant, desk کلمې په انځورونو کې وښیي.
- ګیدړې ته په انګلیسي ژبه کې څه وایي.

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- د desk, eagel, ant کلمې د الفبا په کومو تورو پیل کیږي؟

– زده کوونکو ته په انفرادي ډول لارښوونه وکړئ چې د کتاب د 62 مخ د Look and match برخې فعالیت په پنسل باندې کار کړي. لومړی تاسو ورکړل شوی مثال په زده کوونکو باندې په عملي ډول کار وکړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې یو یو توری ووایي او انځور یې وښیي. که چیرې تیروتنه وکړي، پرې یې ږدئ چې بل زده کوونکی انځور وښیي.

– زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د Let's spell برخې انځورونه په خپلو کتابچوکې په پنسل سره ولیکي .وروسته له هغوی څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووایي اویا یې هیجا کړي.

– له زده کوونکو وغواړئ چې د 63 مخ د Let's work together برخې فعالیت له خپلو ټولګیوالو سره کارکړي. لومړی تاسو ورکړل شوی مثال له یو زده کوونکي سره په عملي ډول کار وکړئ.

– له زده کوونکو څخه په دوه کسیزو ډلو کې وغواړئ چې د Let's work together برخې فعالیت په

| |
|---|
| لوړ اواز سره کارکړي. |
| **ارزونه**<br>له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وشي.<br>1- د ant, fox, car کلمې پرتختې وليکي؟<br>2- د eagle, ball کلمو وروستي توري وايي؟<br>3- د .It is an ant جمله په پښتو ژبه کې څه معنا لري؟<br>4- څوک په انګليسي ژبه وايي چې دا يو توپ دی ؟ |
| **د لوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې د ant, ball, car, desk, eagle, fox کلمو ته له خپلو انځورونو سره ربط ورکړ. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د Let's work together برخې له انځورونو څخه يو په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ ورته ورکړي. |

## سرلیک درس: Unit seven
## Lesson 1

**مخونه:** 65- 66

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. دیالوگ به ولولي.
2. دیالوگ به تمثیل کړي.
3. نوي انځورونه به وپیژني اونوم به یې واخلي.
4. د انځورونو نومونه به ووایي.

**نوي اصطلاح: .Fine, thank you., Sit down please، ښه یم مننه- لطفاً کښېنئ.**

**نوي لغتونه: glass, hand, ice cream, jar, key, lock**

**قلف، کونجي، مرتبان، ایسکریم، لاس، پیاله**

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>- د eagle, fox, ball کلمو معنا ووایي.<br>- د car, ant کلمې سپیل کوي.<br>- پوهیږئ چې د please sit down جمله په پښتو ژبه کې څه معنا لري.<br>- پوهیږئ چې ice cream ته په انگلیسي ژبه کې څه وایي.<br>– د 65 مخ د Let's talk برخې د یالوگ په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې غوږ ونیسي. وروسته دیالوك په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یوځای تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په دوه کسیزو ډلوکې وغواړئ چې دیالوگ له یوبل سره کار کړي اوتاسو هم د ستونزمنو کلمو په ویلو کې ورسره مرسته وکړئ.<br>– د 65 مخ د Liten and repeat برخې د انځورونه نومونه د فلش کار او یا په خپله دکتاب د انځورونو په ښودلو سره په لوړ اواز ووایئ. |

| |
|---|
| – د انځورونو نومونه  په لوړ اواز سره واخلئ اوله زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره یې یو ځای د انځورونو نومونه تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د انځورونو نومونه ووایي اوتاسوهم له هغوی سره  د انځورونو د نومونو په ویلو کې مرسته وکړئ.<br>– د 66 مخ د  Listen and repeat برخې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووایئ.<br>له زده کوونکو وغواړئ چې ښه غوږ ونیسي. وروسته د انځورونو نومونه پرتختې ولیکئ اوپه لوړ اوا ز یې ووایئ. له زده کوونکو وغواړئ چې یو ځل یې له تاسو سره تکرار کړي. وروسته له ټو زده کوونکو وغواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اواز سره ووایي.<br>– زده کوونکي په دوه کسیزوډلو وویشئ چې د  6  مخ  Let's work together برخې فعالیت  له یوبل سره کار وکړي. د بیلګې په توګه یوزده کوونکی یو انځور ته اشاره کوي اوپوښتنه کوي چې What is this? اودویم زده کوونکی د .....It is a/ an په ویلو سره ځواب ورکوي. |
| **ارزونه**<br>د ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1. د .Please sit downجمله  په پښتو کې څه معنا  ورکوي.<br>2. د  key jar, glass  انځورونو ته اشاره وکړئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې نوم یې واخلي.<br>3. کله چې تاسو د .Please sit down جمله واورئ، څه کار کوئ. |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په نني لوست کې د .Please sit down او .Read this جملې ولوستلې همدارنګه مو د  ,glass hand, ice cream, jar, key, lock کلمې زده کړې. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته  لارښوونه وکړئ چې د 66 مخ د  Listen and repeat برخې انځورونه دوه دوه  ځلې په خپلو کتابچو کې کاپي کړي. |

**سرلیک:** **Unit seven Lesson 2**

**مخونه:** 67-68

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1- انځورونه به وپیژني.

2- د انځورونو نومونه به ولولي.

3- ساده جملې به ولولي.

4- د انځورونو نومونه به واخلي.

**نوي لغتونه:**

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت ، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- Please sit down جمله په پښتو کې څه معنا ورکوي؟
- لاس اومرتبان ته په انګلیسي ژبه کې څه وايي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- څو ک وايي چې آیسکریم تروش دی که تریخ ؟
- Lock, key په پښتو ژبه کې څه معنا لري؟

- د 67 مخ د Litsen and repeat برخې د انځورونو نومونه په لوړ اواز ووایئ اوله زده کوونکوو غواړئ چې له تاسو یې یوځای تکرار کړي. وروسته له زده کوونکو په ځنځیري ډول و غواړئ چې د انځورونو نومونه ووايي.
- د 67 مخ د Look and read برخې جملې په لوړ اواز ووایئ اوله زده کوونکو وغواړئ چې تاسو ته غوږ ونیسي. وروسته جملې یوځل بیا په لوړ اوازولولئ، خو دا ځل له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو وروسته یې تکرار کړي. له هغه وروسته له څو زده کوونکو وغواړئ چې جملې په لوړ اواز ولولي اوتاسوهم د هغو جملو په لوستلو کې چې سختې وي، مرسته وکړئ.

| |
|---|
| - له زده کوونکو وغواړئ چې د 68 دRole play برخې فعالیت باندې له خپلوټولګیوالوسره کار وکړي. د بیلګې په توګه  یو زده کوونکی د 67 مخ دListen and repeat  برخې یوانځور ته اشاره کوي اوبل زده کوونکی د هغه جمله وایي.<br>- زده کوونکي په دوه کسیزو ډلو وویشئ چې دLet's work together  برخې فعالیت له یوبل سره کارکړي. لومړی ورته لارښوونه وکړئ چې دغه فعالیت د خپل څنګ له ملګرو سره سرته ورسوي . دبیلګې په ډول یو زده کوونکی یو انځور ته اشاره کوي اوپوښتنه کوي چې?What is this اودویم زده کوونکی د .... It is a/an  په ویلو سره ځواب ورکوي.  وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې فعالیت په لوړ اواز سره سرته ورسوي. |
| **ارزونه**<br>1- څوک د hand, jar, glass کلمې معنا کولای شي؟<br>2- .It is an ice cream په پښتو ژبه کې څه معنا ورکوي .<br>3- هغه کلمې اوجملې چې په دې لوست کې مو زده کړې، په ورځني ژوند کې ترې استفاده کولای شئ؟ |
| **دلوست لنډيز**<br>تاسو په دې لوست کې د It is a glass., It is a hand., It is an ice cream., It is  jar., It is a key., It is a lock. جملې ولوستلې. |
| **کورنۍ دنده**<br>زده کوونکو ته  لارښوونه وکړئ  چې د 67 مخ د  Listen and repeat برخې جملې په خپلو کتا بچو کې کاپي کړی. |

**سرلیک:** **Unit seven**
**Lesson 3**

**مخونه:** 69- 70

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپیژني.
2. د انځورونو نوم به واخلي.
3. د انځورونو نومونه به ولولي.
4. د انځورونو نومونه به تشخیص کړي.
5. له G – L پورې به دالفبا توري ولیکي.

**د تدریس میتود:** یوکسیز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- آیا ویلای شي چې Glass, Ant, Key کلمې د الفبا په کومو تورو پیلیږي؟
- ګیلاس ته په انګلیسي ژبه کې څه وایي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انګیزه رامنځته کړئ:

- د الفبا توري ویلای شي او څو داني دي؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 69 مخ د Look, find and circle برخې کلمې له ځان سره په چوپه خوله ولولي، د انځور سم نوم پیدا کړي او دایره ترې تاوه کړي. لومړی له زده کوونکوسره ورکړل شوی مثال په عملي ډول حل کړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې کلمې په لوړ اوازولولي اوهغه کلمه چې دایره یې ترې تاوه کړي ده، ووایي. که چیرې کوم زده کوونکي تیروتنه وکړه، هغه پریږدئ چې بل زده کوونکی کلمه ووایي.
- له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې د Look find and circle برخې کلمې په لوړ اواز ولولي. زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د الفباکوچني توري له G – L پورې په کتاب کې له ورکړل شوي مثال سره سم په خپلو کتابچو کې کاپي کړي اوتاسو هم دهغوی د فعالیت په بهیرکې د

| |
|---|
| هغوی لیدنه وکړئ اوله زده کوونکوسره د تورو د سم کاپی کولو په برخه کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه**<br>د خپل ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1. څوك د گیلاس، قلف او لاس کلمې په انگلیسي ووایي؟<br>2. څوك د key, ice cream, jar کلمې په انځورکې ښودلای شي؟<br>3. دا چې کولای شئ له بیلا بیلونومونو څخه د انځورنوم پیدا کړئ، څه احساس کوئ؟ |
| **دلوست لنډيز**<br>تاسوپه دې ننني لوست کې د glass, hand, jar, ice cream, key, lock کلمې د خپلوانځورونو له مخې تشخیص کړې او همدارنگه مود الفبا کوچني توري له G –L پورې تمرین کړل. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د الفبا کوچني توري له G - L پورې پنځه وارې په خپلوکتابچو کې کاپي کړي. |

**سرلیک: Unit seven**
**Lesson 4**

**مخونه:** 71- 72

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. انځورونه به وپيژني.
2. د انځورونو لومړی توری به د خپلو انځورونو له مخې تشخيص اوربط به ورکړي.
3. د انځورونو نوم به سپيل او یا هیجا کړي.
4. نومونو ته به له خپلو انځورونو سره ربط ورکړي.

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

**فعالیتونه:**

ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

- څو ک به د hand, lock کلمې په خپلو انځورونو کې وښيي؟
- ګیلاس ته په انګلیسي ژبه کې څه وایي؟

همدارنګه د نوي لوست په اړه په لاندنيو پوښتنو سره انګيزه رامنځته کړئ:

- آیا پوهیږي چې د hand, jar, glass کلمې د الفبا په کومو تورو پیلیږي.
- - زده کوونکو ته په انفرادي ډول لارښونه وکړئ چې د 71 مخ د Look and match برخې فعالیت په پنسل باندې کاروکړي. لومړی تاسوورکړل مثال په عملي ډول په زده کوونکو باندې کار وکړئ. وروسته له زده کوونکو څخه په یو کسیز ډول وغواړئ چې یو یو توری ولولي اوانځور یې وښيي. که چیرې یې تیروتنه وکړه، پرې یې ږدئ چې بل زده کوونکی انځور وښيي.
- زده کوونکو ته وخت وکړئ چې د Let's spell برخې انځورونه په خپلوکتابچوکې ولیکي. وروسته له هغوی څخه وغواړئ چې د انځورونو نومونه په لوړ اوازولولي او هیجا یې کړي.

- زده کوونکوته په یوکسیز ډول لارښوونه وکړئ چې د 72 مخ دLook and match برخې فعالیت په پنسل باندې کارکړي. تاسو په زده کوونکو باندې ورکړل شوی مثال په عملي ډول کارکړئ. وروسته‌له زده کوونکو څخه په یوکسیز ډول وغواړئ چې یوه یوه کلمه ولولي او انځوریې وښيي. که یې تیروتنه وکړه، پرې یې ږدئ چې بل زده کوونکی یې انځور وښيي.

| |
|---|
| **ارزونه**<br>د خپل ډاډ په خاطر له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1- د lock, jar, glss کلمې پر تختې ولیکې.<br>2- څوک lock, key کلمو وروستی توري وايي؟<br>4- دا چې هره ورځ ډیرې کلمې زده کوئ، څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز**<br>تاسو په دې لوست کې glass, hand, jar, ice cream, jar, key, lock کلمو ته له خپلو انځورونو سره ربط ورکړ. |
| **کورنی دنده**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې 72 مخ د Look and match برخې کلمې دوه دوه ځلې په خپلو کتابچوکې کاپي کړي. |

سرليک: Unit eight
Lesson 1

**مخونه:** 74- 75

**وخت:** يو درسي ساعت (45) دقيقې

**موخې**

**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:**

1. دیالوگ به ولولي.
2. دیالوگ به تمثیل کړي.
3. نوي انځورونه به وپیژني اونوم به يې واخلي.
4. د انځورونو نومونه به ووايي.

**نوي لغتونه:** Hello, student, repeat, moon, nest, onion, pencil, quail, rose, star

ستوری، گلاب، مرز، پنسل، پیاز، ځاله، سپوږمی، تکرار.

**د تدریس میتود:** یوکسیز او ډله ییز

**د لوست د اړتیا وړ توکي:** تخته او تباشیر

**د لوست بهیر**

| **فعالیتونه:** |
|---|
| ددې لپاره چې ښوونکی د تیرې ورځې د لوست د زده کړې په هکله ډاډ ترلاسه کړي، له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.<br>- څو ک د glass, ice crem, hand کلمومعنا وايي؟<br>- څوک د hand, jar کلمې سپیل کوي؟<br>همدارنگه د نوي لوست په اړه په لاندنیو پوښتنو سره انگیزه رامنځته کړئ:<br>- څوک یوه فکاهي وايي؟<br>– د 74مخ د Let's talk برخې دیالوگ په لوړ اواز ووایئ اوله زده کوونکو وغواړئ چې ښه ورته غوږ ونیسي. وروسته دیالوگ یوځل بیا په لوړ اواز ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسو سره يې یو ځای تکرار کړي.<br>– له زده کوونکو څخه په دوه کسیزو ډلو کې وغواړئ چې دیالوگ یوله بل سره کار کړي اوتاسو هم له هغو سره د سختو کلمو په ویلو کې مرسته وکړئ.<br>– د74 مخ د Liten and repeat برخې انځورونو نومونه د فلش کارت او یا په خپله د کتاب د انځورونو له مخې په لوړ اوازولولئ. د انځورونو نومونه په لوړ اواز واخلئ او له زده کوونکو وغواړئ |

